# پولادي غرونه

د

شاه عالم څپاند. شعري غونډ

کال

۱۳۷۰



د کورنیو چارو وزارت
د سیاسي چارو لوی ریاست
د خپرونو لوی مدیریت

# پولادي غرونه

د شاه‌عالم څپاند شعري غونډ

کابل ۱۳۷۰



پرله‌پسی نمبر ٤٢٧
دکتاب نوم : پولادی غرونه
شاعر : شاه عالم خپاند
انځور گر : ساتونکی شیر احمد
دچاپ ځای : دولتی مطبعه
خپروونکی : دکور نیو چـــاروو زارت
دسیاسی چارو لوی ریاست
دخپرونو لوی مدیریت
دچاپ شمیر زرټوکه
دچاپ نیټه :دزمری میاشت.١٣٧

# فهرست

| عنوان | صفحه |
|---|---|

# لومړنۍ خبرې

هنر او ادب د ټولنیز ژوند پر مختګ او تکامل سره سم په نوې بڼه او جوله سره د تاریخ په مختلفو دورو کې را منځ ته شوي دي داځکه چې ټولنیز ژوند او د ټولنې واقعیات د هنري آثارو د تولید اصلي سرچینه ده. شعر او شاعري چې د ټولنیز وپیښو د انعکاس غوره وسیله ده د زمان او مکان له نظره یې د خپل کیفیت له مخې بدلون موندلی دی .

د شاعر افکار و احساساتو، عواطفو او جذبې ته د ټولنیزو پیښو د انعکاس هینداره ویلای شو د تاریخي پیښو په بهیر کې کله داسې پیښه شویده چې د شاعر احساس د پدیدو طبیعي رنګ ښکلا او د هوس، عیش او نوش - دستاینې او بیان پر محور راګرځیدلې دې چې دې ډول شاعرانو خپله توجه هنر د هنر لپاره پکار اچولې ده مګر ډیر وشاعرانو بیا د ځور انسان ژوند - درد - ستونزې او په سلګو نو کړاوونه مخته ایښې او د خپلو عواطفو هینداره یې تری جوړه کړیده چې دې ډول شاعرانو هنر ته د ژوند سره پیوند ورکړی دی .

زموږ افغانې ټولنه چې د ملي روغې جوړې د انسانې کړنلارې په رڼاکې د هیواد د بیا جوړ ونــــې او د ورورولۍ د جګړې ځخه د

خلا صون پر لوری په بری ســره چتهك گا مو نه او چت کړ یدی نــو زموږ ددی زما نی شا عران هم ددی سپیځلی آرما ن د سر ته رسید لو پخا طر دد ی کاروا ن د هیلو تــرجما نا ن دی اودنوی ژوند د لاری دستر لمردپلو شو منعکس کوونکی دی .

زموږ او سنی شا عران د هیوادځخه د دفاع ، د خپلو اکی ، ملی حا کمیت ، ځمکنی بشپړ تیا او دزیار کښن ا نسا ن ځخه د ملا تــړ په سنگر کی ولاړ دی چی خوشبختانه د کور نیو چارو وزارت په قطعو او جزو تا مو نو کی د دا ډول شاعرانو ډیر ی بیلگی لرو .

محتر م شاه علم ځپا ند هـــم که دیو ی خواد هیواد ځخه د ډاډ منی دفاع دسنگر زړه ور افسر دی د بلی خوا یی د قلم په تیره ځوکه سره د خپلو عوا طفو ، احسا سا تو او جذبا تو تر جما نی د شعر پـــه ژبه بیا ن کړ یده چی دده دغـــه اثر به واقعا د هیواد دوسله وال پوځ د هر سر تیر ی او افسر لپاره له یوی خوا او دشعر او ادب د مینه وا لو له لپاره له بلی خوا د بری دزیر ی او په هیواد ی کی دسرا ــ سر ی سو لی د تا مین پخا طر سترہ تو منه وی .

موږ په داسی حال کی چـــــی د نو موړی شا عر دغه ستر هنری خد مت ته په در نه ستر گه گورو او ستا ینه تر ی کوو د هیو اد دقلم د خاو ند انو ــ شا عرانو او هنرمند انو ځخه په در نښت هیله کوو چی خپل ا نسا نی احسا سا ت، جذبا ت او عوا طف دسو لی اود ــ جگړی ځخه د خلاصی نړی په لاره کی پکار واچوی او پخپلو ارزښتنا کو او سپیځلو لیکنو سره دبشر یت لپاره دوړ خد مت مصدروگرزی

**دسیا سی چارو لوی رئیس**
**تو ر نجنرال اسد الله پیام**

**ب**

# دشاه‌عالم ځپاندشاعری دی ځپانده‌وی

ښا یسته ډیر کلو نه و شول‌چی‌ځپاند دشعر د شا عری ډګر تـــه را دا نګلی او تراوسه یی‌پر له‌پسی‌ښشپړ تیا یی پړ اوو نه و هلی دی . وینا یی وروورو پخه اوخوږه شوی ده . دی نور په دی رمز پو هیدلی دی چی شعر د انسا نی هستی‌هغه‌سهواوسیده څر ګند و نه‌نه ، بلکی یوه ګرد سره څرمه او ناسیـــــده انځورونه او ځلو نه ده چی له‌رمــز او انځور څخه سر چینه ا خلی او همدغه یی ښنستهیزاولو ښنیز(خصلتی) کار او زار ګنل کیږی . رمز اوانځوربیا د انسا نی ذهن او تخیل‌زیږنده دی چی خپله هستی د اهنګینی‌ژبی‌په جا مه کی را نغاړ ی .

شا عر اړنه دی چی عینی طبیعی‌او ټو لنیز وا قعیت یا په بله و ینا انسانی هستی اله‌خپل ټول څو مره‌وا لی او څر نګوالی سره زموږمخی ته‌کیږدی بلکی یو ازی ئی ښواړ ځ‌او هغه هم د خپل ذهنی او عاطفـی نغښت یاپه بله وینا دخپلو خیالی‌انځورونو په وسیله بیا راځلو ی‌او راالیږدوی ښنتیینی شا عــر دو ی‌غبر ګی ژمنی پر غا ړه لری یــوه هنر ي او بله ټو لنیزه او همد غـه‌غبر ګی ژمنی یی بیا دغبر ګو نــی هنر ی او ټو لنیز ارمان ښکار ندو یی کوی .

هنری ژمنه او ار ما ن د شعر اوشعر یت جاج(مفهوم) پر ځــای کوی او ټولنیزه ژمنه او ارمان یی‌مو خه (هدف) سمبا لوی ســـاده نظمونه اوترانی په ولسی شاعرا نواو یانیم ولسی شاعرانو اړه لری چی د شعر یت څرك پکی دو مره‌نه‌لګی او دواړه آرما نونه په ډیـــره

ساده گي پرڅاي کوي دا سي جي له ګړ نی ژبې سره يې له تول او قا فيي پر ته تو پير دو مره نه‌شي کيدا ی .

له يوه لو ستي او زده کړه وال شاعر لکه څپاند څخه تر هر څه مخکې (دشعر يت) هيله کيږي دده وينا با يد ديوه و لسي شاعر هو مره ساده او سيده نه وي او هنري نا ښکلا ييزه جو له (شکل) يې با يد دو لسي پر-ګنو د ښکلا خو ښو نې تر ګچي زيا ت را کښنون ولري . په دې توګه کولاى شي هم د لو ستيو مينه وا لو غو ښتنو ته ځوا ب ووا يي او هم د نا لو ست پر ګنو ساده ښکلا ييز ذوق (ذوق) وروزي اوو ده ور کړي که نه په ساده ډا نګ پييلي تکر ار ی و ينا له ولسي شا عرانو څخه خپل بريد را جلا کولاى نه شي او ددوا ړو تو لنيزو( لو ستو او نا-لو ستو) پوړو نو په وړاند ی خپل تو لنيز او ښو و نيز (معر في) پاژه او ا ستا زی (رسا لت) پر ځـاى کولاى او سمبا لولاى نه شي او د-خپل فر هنګ په وده غوړ يدا او ښښپړ تيا کی کو م مثبت نقش نه شی لو بو لاى ان ترد ی چی دنا لو ستو پر ګنو په وړاندی هـم دو مره نه لکه نا لو ستي(ولسـي)شا عر يي چي په وړاند ی پرځـاى کو ی . ځکه دغه لو ستي و لسـي ډوله شاعرد ليکني (تحريري) ژبې په کارو نه چي پاړ سي او عر بـي ياهم غربي پوړوواييونو له کبله له ګړ نی ولسي ژبې سره څه ناڅه تو پيـر پيدا کو ی و لسي ګرا نښت هم-دو مره ترلاسه کولاى نه شي .دولسي شاعر ګرا نښت تری پـه‌دی هم‌زيات دی‌چی خپل هما غـه ساده انځور ونه سيده له خپـل طبيعي چا پير يا ل څخه اخلي .

موږ د همد غو څو ټکو له مخـې له‌زده کړه وال څپاند څخه تر هـر هغو زيا ت څه غواړو چي دده‌لـه‌ولسي منلي خوږ ژبې کليوال شاعر

(ماننګ‌چان) دغه‌ي غوښتنه کړو. کله چې دغه ځوان او ازمېښتکـــــار شاعر خپل پنځه شعري غونـډماته‌د سر یزې لپاره راو سپاره او دخو ښوونې او امرنې واك یې ما ته پر یښود نو تر هر څه لومړی‌مې پکې یو چان وکړاو بیا مې بیر ته‌شاعرته‌ورکړ چې هماغه امرلی او چا نلی بیلګې یې له سره تا یپکړی او پـه‌اوسنی بڼه یې بیر ته زماپه واك‌کې را کړی .

دغه او سنی غونډه د څپاند دو رستیو څلور ـ پنځو کلو نو شعری زیږیدلی را اخلی چې بې‌له‌شکـــــه‌تری د ده شا عری بشپړ تیا یې‌بهیر ښه ترا خر ګند یږ ی پر قا فیـــه‌ ‌ لو ژانرونولکه غزلـو دوه یـزواې څلور یزو سر بیره یوه نیمه بیلګه‌بی قافیه غو نډې تو تې هم لرې چې دا یې هم د نو ی آزاد شعر خواته یوه نوی هڅه او لیوالتیا ښیي .زه په پوره باور ویلای شم‌که ښا غلی‌څپا ند له لنډ تنګ قا فیی چو کاټه ورووړو را ووځی هرو مرو یې د (شعریت) بهیر نورهم چټکتیا مومی اوپه خو راتلونکو کلونوکې‌به‌دنوی‌آزاد پښتو شعر بډیل تګره لاروی و لرو .

زه په همد غه هیله خپلی‌دوستانه‌خبر ی پا ی ته رسو م او دغـــه ځوان جنګیالی، اوپرهنګیالی تـــه‌دلاسممسوری شا عرانه راتلـونکــی غوښتو نکی یم.

په تو له شا عرانه مینـــــه
**پو هاند دو کتور مجاور احمد(زیار)**
**تله ((۱۳۶۹))**

# دی مجموعی ته لنډه کتنه

د تیر ی لسیزی په بهیر کـــی د پښتو شعر یو نوی شا نتـــه بشپړ تیا یی پر اوته مخه کړی ده.دشعر په شکل او محتو اکی بدلون لیدل کیږی . ځینی شا عرا ن د غزل په زاړه فور م کی خورا تو ند خو ځند ه او سو ځنده هیجا نونــه پهځهناځه ښو ښکلو انځورو نوکی رانغاړی ځینی شاعــران دقصیدی کلاسیك چو کاټ ته ننوزی اوزموږ دهیواد دچاپیریالی پیښواوواقعیتو وپه هکله د خپل ځان او د خلکوتاـ ثرا ت دویر نو او ستا ینو پهلړیوکی افاده کوی . او ځینی نورد بیقافیو او بیو زنو شعر و نو دو یلودمسابقودګر ته په بیړه او نا کرار ی ســره دا نګی . دشعر نیلی یا غی شوی‌شا نته بر یښی او دځغلیدو لاړهاو لور ی یی را سیده شوی نه دی . زموږ ادبی‌تیور یسنان او کـــره کتوونکی هم شاعر ته لارښوونــه نهکوی .اویایی‌نهشی کولای.

خوزه خوشا له یم چی زمـــوږد شعر مو ضو ع او محتوا زمـــوږ د خلکو لهژوندا نه سره تړون او پیو ستو ن موندلی دی لهنــــورو بینګو نه تیر یږ واو دخپاندشعر نو همدی مجمو عی پاڼی راسپړو.

دخپا ند تړول شعرونه تړو لنیزه محتو الر ی .دی‌که خپل احساسونه بیا نوی . که له خپل ځان ســـرهږغیږی ، یا له طبیعته سره . کــه په وصف لاس پور ی کوی . یاد دفا هیمو پهباب څه وایی . پـــه تړ لو کی ملی ، وطنی ،انسا نـــی‌او تړو لنیز آرما نی ارزښتونو تهپه منا سبو ځا یو نو او قر ینو کی پهشا عرا نه تا کید ی ښه او پـــه

انتخا بـــــی انځـــو ړو نو کـــی ځا ی ور کو ی . دخپل ند دشعرونو یو ه عمو می ډوله ځا نګړ تیا داده چی هر پاړکی یو ی خا صی موضوع ته وقفو ی او په دی تو ګه په هره ټوټه کی یو فکر ی و حدت منځ ته راولی او په دی تو ګه . زمـــا په خیا ل د خپل شعر ښکلا ییزاغیز- نا کی ته زورور کوی . دخپل نـد دځینو شعری ټوټو انځورو نـــه د حاد ثا تو او پیښو دړا منځتــــه کیدو علی تسلسل څر ګندو ی او مثلا وا یی :

بیا فلك په کو کو سر شو
هیبتنا کی یی ناری دی
د سکو ت فضا شوه ړنګه
په تور تم کی سری لمبی دی
هر ی خوا ته یی سپر غی ځی
لور په لور با ندی شغلی دی
په لړزه واړه ښتا ن شول
خو ز ید لی زلزلی دی
و چود ښتواو میرونه
پور ته شوی ګرد لی دی
څو مره زوردی و لسو کی
جوړی کړی یی جر ګی دی
مرور پخلا کوینه
را ړوا نی قا فلی دی

خپاند په دی پاړکی کی د فلك د هیبتنا کو نارو له کبله دسکو ت فضا ړنګو ی او په تور تم کی د لمبو سر ی نمبی ایجاد دوی چی سپرغی یی لور په لورخی او هری خوا ته شغلی را منځ ته کیږ ی له دی نه د سی

ز

زلـ لی ښو ځیز ی چی ټول بنتـانپه ایزورا و لی . په همدی ترڅ کی و جو د بنتو ار میرو نه گرد لی را پور ته کیږی . دغه ټو لی پینـی ځکه پیښس شوی دی چی اولسونو جر گی جوړی کړی دی او قا فلی یی را روانی دی چی
مرور سره پخلاکی .
په دی شعر کی حاد ثات پـــه ړزا ما تیکه تو که یو له بل څخه‌راـ پیدا کیږی . خلکو جرگی جوړی کړی دی چی مرور سره پخلا کی. نو یی قا فلی را روا نی کـړی دی‌دا ق فلی دو مره زورور دی چی‌په نړی کی یی هغه نور ی ټو لـــــــی‌حاد ثی ا یجاد کړی دی . چی‌اشاره ور ته وشوه . ټول بیتو نه په گډه‌سره (حسن تعلیل) معنو ی صفت لر ی . دغه ټول شیا ن ځکه حادث‌شوی دی چی مرور سره پخلاشی.
ما یوازی یوه نمو نه د لتـــــه‌وڅیړ له ، لو ستو نکی په خپله‌له نورو ټوټو څخه له خپل ذوق اودرک‌سره سم خو ند اخیستلای‌شی .
زه دڅپا ند د شعری ذوق او دده‌د هد فمنو اشعار وستا ینه کوم او ده ته د شعر و یلو په لاره کـــــی بریالیتوبو نه غواړم .

**داکا د یمیسین کا ند یـــــــد**

**پو ها ند ډاکتر محمد رحیم الهـام**

**د۱۳۷۰ د حمل (۷)**

# دسولي سرتيري ته

گوره چې کښېنې در نه چپه نه‌شي
ځان د سمندر څپوکې ډوب نه‌کړي
ټینګې کړه پښې ، په توپانونوکې
لاره ور که نه‌کړي په‌ګردونوکې
سپورشه پر څپو با ندې او مخکې ځه
پل کېږده لمبو با ندې او مخکې ځه

ته يې د هیواد د آرامۍ سرتیر
زموږ د پر ګنو د نیکمرغۍ سرتیر
ګوره چې کښېنې درنه چپه‌نه‌شي
ځان دسمندر څپوکې ډوب نه‌کړي



کابل ۱ ثور ۱۳۶۸

# د سرحد ساتونکي ته

لکه بازد هند و کشس وهي دوړونه
نه پوهیږم چې په کوم خوايي نظر دی
خلاص وزرونه د نکه غاړه يې نیولې
له غوسې نه په دښمن بانديې برد ی

شاو خواته يې ښار نه ده روانه
په خپل دوست اوپه دښمن باندې خبر دی
دمیړانې په غرور باندې نازیږي
له دښمن نه يې ایستلـــې روغ ځیګر دی

آرامي او سوله غواړي په هیواد کي
په پاك زړه باندی ساتونکي دسنګر دی
چې د ښمن ورنه را تیر نه شي په خوا کې
په موږ ګران دغه سر تیری دخیبر دی.

دنیکونو په قدم باندې قدم بږدی
چې له موره زیږیدلی دا زړه ورد ی
آرا مي غواړي په سیمه او نړۍ کې
دی په مینه باندی ډوب دټول بشر دی

# لمــــره !

لمره ځلیږه د آسما ن پر لمن
زه می د ژوند پایښت په تا کی‌وینم
توروتیا رو سره اشنا نه یمه
دزړه قو ت ستا په ځلا کی‌وینم
دا مید و ستور ی می خا ندی‌واته
دا ننداره ستا په فضاکی وینـــم
گوره هدف ته به می‌زر سوی !
د تیار و تیښته ستارناکی‌وینم



کابل ۲۵ر۳ر۱۳۶۸

# کوکیچی ته

ځان می در نژدی کړرا نن دیشه لږ
مادرته راوړی پټ راا زو نه دی
ما ته به کیسی ددی وطن کوی
ستا صفت نه ډک ټول تار یخونه‌دی
شنو دروکی ر نګا رنګ ګـلان‌لری
تا کی د بز مو نو آوازو نه‌دی
څه ښکلی موسم د پسرلی‌لری
غرو نه دی ډک‌کړی له ګلونودی
ستا د حفاظت لپاره کار کیږی
تا نه موږ تاو کړی سنګر ونـه ی
ګوره چی وطن دږنه خپه نه شی
دلته ځای په ځای زموږ کانونه‌دی
تا پخپله غیرکی د پررواز لی دی
هر یو یی توپان دی قو تو نه‌دی
مینه محبت شته ستا په خلکوکی
خنګک په خنګک یوشوی دلتـــه‌زړونه دی



بد خشا ن ۷۱ر۳ر ۱۳۶۵

# شهید

دوطن په غیرړ کی پریوت
میړ نی دحما سو وو
کړ لیچو نه یی ځان وایست
راوتلی له لمبو وو

دو ګړو په چو پړکی
تل مدام ډوب په خولووو

د سمسور هیواد په نیت کی
زړه یی ډک له امید ووو
د آرام ژو ندو ن په تمه
شپه او ورځ به هڅیدووو
زما نی ته یی ځان وښود
لکه لمر په خوزیدووو



تو فا نونو کی به ته دی
خوی خصلت یی د زمرووو

# پندی ته

خو لو کی ډوب او سر گران پنډی
د زما نی د تور زندان پنډی
کله ړسي دی وی له ملا نه‌تاوه
کله دو لو په مابین کی پرته
ترخوبه ستا په شاه داکته‌گرځی
تر خو به ته دا درانه پیتی‌وړی
په لوخو پښو په سرو غر موکی‌گرځی
خلك خو وینی ستا شکید لـی‌گریوا ن
خو ، دا به ته راته ځوابداکوی
چی پلارنیکه نه ته پنډی‌پیداوی؟
اوکه له قو مه اوله پښته‌داسی؟
یا له جها نه نا خبر ه یی‌ته؟
یادی‌مغز وکی کوم‌مرض پیدا دی
یا به یی ستړی او ستو ما نـه‌همیشس
یا به له فکره او له درکه خلاص‌یی؟
هرخه چی یی ملا مت نه یی‌وروره
زړه ته نږدی زما دسترگوتوره
هغو ی دی و مری
چی په تا با ندی ملنډی کوی
ستا شرا فت او ستا به پت‌باندی
هغو ی دې ومر ي



دلبنبکر گاه نبار ۲۶ جوزا ۱۳٦۷

# دیتیمژړا

مه ژاړه چې ما ته هم ژړاه راځي
ستر ګو کې مې او ښکې خا مخاراځي
بیا د کو م ظا لم بچې وهلې یـــې
ځکه د جنو ن حمله په ماراځي
څوك که بشر یت ته ا حترام لري
ولې دستم ګذار په تاراځي
ستا ده هره او ښکه سمندر غوندې
جوړ لکه سیلاب ورنه غو غاراځي
او ښکې لرې پا کې کړه نورژاړه مــــه
هر ی تار یکې پسې رڼاراځــــې
ستور ی دسبا نن را ختلې دې
زموږ ه دې وطن ته ارتقا راځي
ستا دغه و یرونه به مې هیر نه شي
ماڅپا ند ته خوب کې ستا سوداراځي



# روغه جوړه

بیا فلک په کو کو سره شو
هیبت نا کی یی ناری دی
دسکو ت فضا شوه ړنګه
په تور تم کی سری لمبی دی
هری خوا ته یی سپرغی ځــــی
لور په لور با ندی شغلی دی
په لړزه واړه تبا ن شول
خو ز ید لی زلز لی دی
وچود ښتو او میرونه
پور ته شوی ګرد لی دی
څو مره زور دی ولسوکی
جوړی کړی یی جرګی دی
مرور پخلاکوی نن
رارروا نی قا فلی دی



# غوارم

غوارم هسی زړه
چی تورو شپو سره جګړه وکړی
ظلم او ستم باندی ،
وپړ کی بر یښناء په شان حمله وکړی .
وشیند ی سپرغی خپلی ،
بل راته اورو نه کړی .
لاړ دی شی حجرو په لور
و ینښ دی و لسو نه کړی
دا سپیځلی خاوره می
داد هر مظلو م زندان
ولی به زه نه وا یسم
سوځی می وجود اوځان .
نه غوارم بی غمه زړه

نه غو اړم آرام ژو ندون .
غواړم هسی زړه چـــی
تورو شپو سره جګړه وکړی

* * *

غواړم هســـی زړه
او ړو ی او تو پانوی
ځغلند له دورانه وی
دا به وی د چاڼړګی ،
دا به دافغان او ســــی



# بیلتون

پسرلی به راته راوړی افغان بیا
تیر یادونه د سارا دارغوان بیا
نا قرار زړه به تر څوزه تسلا کړم
را روانی می شوی او ښکی پرګریوان بیا
دبیلتون او جدا یی له لاسه خلکو
په سر خاوری با دوی ټول مینان بیا
په لیمو به ورته لاره زه جارو کړم
که را ټول شی غمځپلی افغانان بیا



کابل ۱۸ ثور ۱۳۶۷

# مسافر آشنا

تیر دی کړل وخت ونه مسافر آشنا
یو کال نه کلونه مسافر آشنا
دا سی مرور شوی چی مخ نه اړوی؟
بل دی کړل اورو نه مسا فـــر آشنا
خو بـرا حت می نشته ستا په فکر کی
زیا تـ دی کړل رنځو نه مسا فرآشنا
ستا دپرد یسی او بی کوری په حال
ژاړی آسما نو نه مسافرآشنا
سو لی ته موږ واړه ضرورت لرو
بند به شی جنګو نه مسا فـــر آشنا
سوا ل در ته کومه چی راځه کورته
مړاوی شول ګلو نه مسافرآشنا
ستا په ستنیدو به کړی خپا نـداختر
ورک به شی مر ګو نه مسافرآشنا



# سوگند

د ابا سین په تو پا نی اوقهرجنوڅپو
د خپل هیواد په غیر تمنو بچو
د بز گرا نو په‌دی چاودو پوندو
د یتیم ما شو م په آه ، او فریاد
د سنگر و نو د سر تیرو په‌هوډ
د شهید انو د مزار په ډیوو
د پیغلو جو نو محبت په‌لمبو
د انسا ن د انسا نیت په‌قوت
د پسر لی د کیفیت په مقام
د شا عر ا نود قلم په ژبه
دلمر د پلو شو په‌رحم
د پتنگا نو په بی با کو حملـــو
د لوړ آسما ن په نا مه
ترڅو په تن کی می چی و ینه‌گرځی
د خپل هیواد دبد خوا ها نوپه‌لور
لکه د تا لند ی بر یښنا په شان‌به
چی تو رووړ یځونه ښکی با سی
په دغه شان به غور ځنگو نـه‌پی کو مه

کا بل ٥ ثور ١٣٦٨

# گذربیا

مینتوب پر زړ گی وکړلو اثر بیا
((بیلتا نه می لمبی بلی کړی په سر بیا))
زه پخپله حرارت د عشق کباب کړم
خو لیلی می را ته ښی خپل نظر بیا
د ساقی په پیمانو کی اثر نشته
چی په اور با ندی سو زیږی می ځیگر بیا
د چا زورور با ندی کله رسیدی شی
تور ښامار که یوځل تا و شی له ښنتر بیا
د مجنون په سر د غم اوږو نه بل شو
دی را تولی مستی پیغلی په گودر بیا
د هوسی په شان چی یار می راته گوری
عقل او فکر می په سر کی شی اوتر بیا
دنا صح په نصیحت با ندی خه نه شی
د منصور غو ندی تیر یږ مه له سر بیا

لکه شمع غو ندی ژاړم اوویلیږم
ډیرو او ښکو نه می جوړ شــوسمند ربیا
زما نه په ماوهی ولی ملنـــدی
ورړوا ن یم د خیا لو نو پهلښکرېیا
ددنیا واړه غمونه بهمی هیرشی
که آشنا می یوځل را شی برابرېیا
د بقا خیا ل راسره دی پهرښتیااوس
زه به جوړ کړم خپلی خاوری نهسره زربیا
کوم بد خوا که وی ددی وطـنـدښمن نن
ما خپاند نه به ټینګ نهشی کهوی غربیا



# افغان بیرغه

له تا نه جار د هر افغان بیرغه
رپانده او سی پر جهان بیرغه
د هر یو رپ نه دی بریښنا جګیږی
د تورو شپو په ځای سبا جګیږی
لکه دلمر په شان روښان بیرغه
رپانده او سی په جهان بیرغه
خپله میړا نه ستا بقا کی وینم
دوروړو لی ژوند په و فاکی وینم
خومره ښایسته یی زماشان بیرغه
رپانده اوسی پر جها ن بیرغه
ستا مینه جګه شوه په مینو با ندی
اوس به دی ساتو په سر وو ینو باندی
څپاند دی تا نه شی قربان بیرغه
رپانده اوسی پر جهان بیرغه



# زما قلم

زما قلم دزړه ارمان لیکی
د نو ی ژو ند ښکلی دا ستا ن لیکی
چی له عمر و نو تر ستم لاندی وو
شو راوفریاد دخوار انسان لیکی
دحما سوتاریخ په لاره با سی
د هر شهید دزړه بیان لیکی
راتلو نکی نسل ته هیوادجوړوی
دپر مختگ په لور دیوان لیکی
دهیواد هرگنج اوکنار ته دروی
کیسه د وخت اود زمان لیکـــی
ورځی سنگر ته میړ نیو پسی
زیاړ او زحمت د قهرمان لیکی
دادباز انو عقا با نو کو ر کـی
خو ی او خصلت د هر افغان لیکی

بد خشا ن ۱۹ر۳ر۱۳۶۵

# ای هیواده

ای دبودا او دزردشت هیواده
ای دآریا دغور ځنگو نوځالی
تیر شو ل په تا با ندی دو خت‌قرنو نه
دپنځو زرو په حساب کلونه
د زما نی په گرمه غیږه کی ته
کله در یږی کله ځی په‌بره
تا له پردوسره جگړی کړی دی
تا د عظمت بیرغ او چت‌ساتلی
ستا د همت شمله کږه نه شوله
تادږ نگر یز خم کی لمبلی نه‌دی
تا د میړانی اصل ټینگ‌وساته
تا دا خپل ځان په پردو خرڅ نه‌کړ
تا نو ی نسل ته تاریخ جوړکړی
په هر یو با ب کی یی کیسی‌د غیر ت
ور کړی تا هر یو افغان‌ته‌قوت
ای دویدی او دزردشت هیواده

ای د آریا دنهضتو نو ځالـــی
د زما نی په گر مه غیرهکی ته
کله در یږی کله ځی په بـــــره

* * *

ځمکه دی گر مه کړه تنور پـــهشا نی
په سکندر با ندی تاخه و نـــهاکړل
د چنگیز یا نو په ناخاپو حملـــو
څنگه یو ځل دی پری محشرجوړکــــړ
په غم ځپلو دیاختر جوړ کړ
ای دویدی او د زردشت هیواده
ای دآریا د نهضتو نو ځالـــــی
د زما نی په گرمه غیرهکی تـــــه
کله در یږی کله ځـــی په بـــــره



# دسولې مرغۍ

لو ی وزر ی ، د آسمان لەشین ټټرنه
سره گلان یې دی را خیستی لەمجمر نه
الو تو کی سمندر غونډی آرام ځی
بنه خبر دی دطبیعت له لراوبرنه
ساه او باسی د فضا لو یەسینەکی
په غرورکی ځان لوړ نەگڼی بشرنه
آرا می او امنیت با ندی خوښیږی
زړه یې توردی په ریښتیا د جنگ ډگر نه
انتظار کی می داد وه ستر گی کړی شوی
که اوس ژر را شی په خیر دی له سفر نه
ورسره به وی پیغام د رو غـې جوړی
بهره مند بەشو حتمی لەدی ثمرنه



کابل ۱۰ ثور ۱۳۶۷

# وطنه‌واوره

واوره زه مین‌یم‌ستا په‌دنگو دنگوغرو با نـــدی
هیڅ پروا مـی‌نشته نن دژوند خوږ و ترخوبا ندی
څه غواړی عذاب ـ زحمت ـ کړاوزما پتنګ نه نن
ما خو له پخوانه‌تیږه اینبی په غمو با نـــــدی
سل ځلی می مخی ته ر قیب لاپورته شو ی دی
دا سی‌می‌و هلی‌خو له یی ما ته په سو کو بـا ندی
دلته دافغا ن بچو چی تو ره راو چتـــه کـړه
هلته ابا سین اوهندو کشس شو په څپوبانــــدی
خا ند مه خو ښبیږ مه چی کـوردافغا نا نو دی
ګرځی سربازان‌دامنیت پـــه سنګرو بـــا نـدی
هر زلمی چی ګورم د عقاب‌په‌شان‌حملی کــــو ی
دلته ښته‌میړانه‌نار نتوب په خوررو بـا نـد ی
ما ته د افغا ن وطن کیسی کوی‌خو ښبیــږ مـه
زه څپاند مین یم‌دوطن په تا تـــر و بـــا نــدی

# زما زړګیه

کله کله تور کودی شی په‌غموکی
کله کله ځان افسر کړی په‌خیالو کی
کله‌کله د نګار خنګ ته نژدی‌شی
کله کله در نه هیروی په کلو کی
کله کله د ما شوم غوندی‌ژړیږی
کله کله ور ته خاندی په وښکوکی
کله کله دوصال امید له یارکړی
کله کله وی بیلتون تورو تیاروکی
کله کله دی خیال خیژی آسمانوته
کله کله را نه ورکه‌شی په‌تلوکی
کله کله در نه جوړ یوفیلسوف‌شی
کله کله دی بیا ګورم لیونوکی
کله کله دسا قیانو خوا ته درومی
کله‌کله ځان ښکاره کړی‌جو ماتوکی
کله کله ځانته وای خه‌متګاریم
کله کله درنه ځان ورک‌شی‌چړچوکی
کله کله د هر چاغم دړ سره‌شی
کله کله نفسانی شی عشرتوکی
نه تصمیم نه اراده لری زړګیه:
ما خپاندنه ته شرموی په‌مجلسوکی

# ساقي راکړه

زوال کله له تعمیر سره سمیږي
ساقي راکړه چې پیاله درنه تویږي

ماوده کړه د خپل خوم سره په څنګ کې
چې مې زړه نور په غمو نو کې ډوبیږي

زه خپه یم له قسمته څنې خلکو
بخت مې ړوندې په دیوال باندې لګیږي



دآشنا بې وفایې نه ګیله من یم
خپله مینه را ته اور شوه لمبه کیږي

زه د یارد تورو زلفو بند یوان وم
او س مې مینه ورو په وروور نه کمیږي

څه مې یار لږ جفا کار او څه رقیب وو
اوردد وارو مې دزړه په سر بلیږي

نه پو هیږم چې کم عقل که نادان دی
د غما ز په خو له مدا م دې دوکه کیږي



رقیب هسې د څوا نې په پوله نه څې
کار غه کله د عقا ب مخ کې دریږي

داقانون دطبیعت دی ای څپانده!
که حسین وې که بدرنګ وې فنا کیږي

# ګیله

ليلا زما د درد دوانه شوی‌ته
چې په زاريو   مې رضا نه شوی‌ته
ګوره بنا يست دی‌څه بقا نه‌لری
پښه دی خو له ده په خندانه‌شوی‌ته
لکه پتنګ غو ند ی لمبو کی دی‌وم
افسو س کو م چې مې آشنانه‌شوی‌ته
ورځی مې شپې وی ته خبره نه‌شوی
زما په سر باند ی سبا نه شوی‌نه
دغم څپې مې اوس هجرا ن تــه‌بیا یی
چې مې له حا له هيڅ آ ګا نه‌شوی‌ته
څپاند ته پا تی دار مان‌په زړه‌کی
خوښ به رقيب وی چې زمانه‌شوی‌ته



# شاعر او پسرلی

دامنم چې تا راوړی دی ګلونه
په یودم به زرغونه کانـــدی دښتونه
دوطن سپیره ډاګونه به سمسور کړی
کښېنته پوړ ته په روان کړی کاروانونه
با غو انان به دژړار یکـــارډبدل کړی
شی به ګرم د بلبلو اتڼونه
صمیمیت او محبت به په‌طغیـــان‌شی
عاشقان به کړی د مینی ګذارونه
شپونکی به بیا د تیږی په‌سرناست وی
د شپیلی نه به راباسی آوازونه
ابشارونه به په زیر اوبم کی‌درومی
دمستی نه به وهی هرخوا موجونه
دخپاند د درد در مل خو هم لږ وکړه
ځکه ډیر لری په زړه باندی‌زخمونه

# دشاعرخیال

څه به کړم دا ژوند چې تول‌تیریږي په غمو نو کی
نشته دی قو ت می په وجود او په رګو نوکی
څه که ا ستعداد شته دی‌خو کاراو روز ګار نشته دی
بخت می دی او بنتی او س یی‌ګورم په فا لو نوکی
نه کیږي چې شپون شمه‌صحرا کی‌در می سره
هلته به تد بیر دخپل افسو س‌کړم په خیا لو نوکی
ښه مسته شپیلی به وی اوزه‌به‌وم رمه به وی
لری به له زړه نه کړم تنا کی‌په غمو نوکی
درد او کړ او نو می زړ ګی نوریږ سو لی دی
نور به زه دی سمی ته رانشم‌په‌عمر ونوکی
چپه او چو پتیا به وی ، دردسره دوا به‌وی
هلته که لږ ښه شی دغه فکرمی‌په غرونو کی
بیا که کوم ملګر ی درد یه لی‌شی آشنا زما
یونه به‌شو دوه او دوه به ګـله‌شو په زړونو نوکی
دلته د خپا نه په آرزو ګا نو به‌سپرلی راشی
هلته به ا ختر وی دغریبو پـه‌کورونو کی

# ډیره ښه شوه

دو صال په ځای جفا شوه ډیره ښه شوه
پټه مینه مور سوا شوه ډیره ښه شوه
شا لیلا د بی و فا آشنا د لاسه
خو شحا لی کی په ژړا شوه ډیره ښه شوه
که هر څو می ور ته سوال زاری کولی
دا منکره په خندا شوه ډیر ښــه شوه
دګل رخو په ګلزاریې چې نظر شو
ددید ن په تما شا شوه ډیره ښه شوه
ماو یل چې نفسا نی مینه دی وژنی
هلته ما ته په مسکا شوه ډیره ښه شوه
لیو نی دځان په ویر باندی اخته وه
شپه او ورځ یی په بیدیا شــوه ډیر ښه شوه
ای خپا نده ه د پتنګ پیښی دی وکړی
په قسمت کی دی سزا شوه ډیره ښه شوه

# راځي

ورمو کې شور نن دسبا راځي
د لمر له کلي نه رڼار اځي
دو طن مینه مې دزړه په پلو
لکه مجنو ن ته چې لیلا راځي
را نه وطن نن فعا لیت غواړي
پر ته له ډاره په خنداړاځي
زموږ هیواد د غور ځنګونو وطن
په پر ختګ مواتکا را ځــــــي
واړه دردوته مودرمل بهشي بیا
فنابه مرګ شي مسیحا راځي
مینه مې وینه کې خپې و هي‌تل
په تورو شپو پسې سبا ړا ځــي
دژو ند په رمز باندې‌پوه شوي‌یمه
خوشې مې ذهن ته معما راځي

دزمانی په چالاکی کی‌می نن
ما ته آرمان د ابتدارا ځـــی
چی‌می داخوار وطن‌عاجزو ینمه
ځکه می ستر گو کی ژړا را ځـــی
دوطن مینه کی می زوړ کړ خپل ځان
خدا یه او س کله به آشنا ړاځی
دوطن درس راته راکړی‌پلارو
خو ب کی می هرشپه دادراځـــی

# سرې جنډې

هك حيرا ن يم زمانې ته
د آسمان لمنې سرې دي
دفضا لو يه سينه کې
ځاى په ځاى ډير ى و سلې دي
ور کاوي د بشر يت ته
جوړې شوې سلسلې دي
دنړۍ دې جبارانو
شروع کړې څه نخرې دي
زموږ خوار غر يب هيواد کې
هم د سر وو ينو ويا لې دي
هر ه خوا يې ډکې کړې
په څوا نا نو هد يرې دي
دآرا م ژو ندون لپاره
جگې شوې سرې جنډې دي
دنړۍ خوار يکښان نن
سره نا ست دي او جرگې دي
نتيجه به يې ښکاره شي
ډير ى کلکې فيصلې دي
استبداد نا بوده وي دوې
په ظالم با ندې حملې دي

# وړوکی بلبل

په دی باغ کی خاموشی‌ده
په بلبل باندی څه شوی
یا پخپل سر چیری تللی
یا یی زړه چا خپه کړی
دا به څوک را ته څرگند کړی
چی دا چیری او څه شوی
یا ظالم په وزر ویشتی
یا طبیعت چیری وژلی
گلان ټول په مړاویدودی
دپیغام قاصد یی مړدی
اوس به گورو .....
چی څه کیږی
دا به کوم ډول پسر لی وی
او دا به څنگه گلستان وی
خوږ بلبل چی پکی نه وی
بی آوازه باغ او بڼ دی
نه یی کیف شته نه یی خوند
هیڅ دی نه‌وی داسی ژوند



کابل ۲۰ر۷ر ۱۳۸۵

# د ړوږی تنګسه

تر څو به دا دماشو ما نو لیکی
ترڅو به داد بیوزلانو کتار
ترڅو به دغه پا کلمنی بندځی
دڅو ډوډ یو لپاره
دنا ن وا یی په خوله کی
له نیمو شپو تر سهار

* * *

په انتظار ولاړوی
موږ له ابده داسی
په ګیډه‌وږی نه‌وو .
نه په تاریخ کی چیری
دا سی قحطی را غلی
هما غه غرو نه زموږ
واړه سیندونه زموږ
دښتی میری زموږه
ټولی دری زموږه
له ا بتدا نه ترننه
په یوه شان ښکاریږی

* * *

کوم شی چی ما څوروی
او کوم شی چی زه‌نه وینم
هغه یوون دی ورونو
هغه تړون‌دی ورونو
ولی زموږ هیواد
اوولی زموږ پرګنی
خپل اسا سی دښمن ته
چی له کلو ، کلو نه
ددی وطن تبا هی
ددی وطن بربادی
هره ګړی غواړی
ور ته‌یولاس نه کیږی

* * *

که د نیکو نو په دود
مشراو کشر موږ‌کی
ځانو نه و پیژ نی
هم به په ګیډه ماړه
او هم به په تن با ندی پټ
که داسی نه وی ورونو
هم به په تن لوڅ اوسو
او هم به په ګیډه وږی

مدا م قحطی به وی
همدا نیستی به وی
په ا نتظار کی به موږ
دنان وا یی په خوله کی
له نیمو شپو ترسهار
تشس د ډوډی په خاطر
ستړی ستو مان
ټیلو تنبو له لاسه
ډوك د خو لو له لاسه
په انتظار کی به یو

کابل ۲۸ حمل ۱۳٦۸

# کندهاره!

ای زموږه کندهاره
دویاړو نو ستر یاد گاړه
دا ستا عضمت ته سلام
ستا شهامت ته سلام
ستاد لیدو لپاره
له ډیره لری ځایه
په میا شتو میاشتو باندی
کړی دی ما مزلونه
ځان می دروورساوه
دغه دی در غلمه
کله نا کله گوره
ما ته په خو ب کی راتلی
لکه په شان د جنت
ستا ښا یسته طبیعت
ما په خو بو کی لیده

او س دی په ستر گوو ینم
ستا له با غو نو نه ځار
ستا له سیندو نو نه ځار
دار غندا ب دری دی
ډك له لالو نو نه دی
له زما نو را هیسی
میشته قو مو نه دی دی
دا نگور یا نو پهلور
د تیمور یا نو په خوا
دښتی او غرو نه دی ټول
ډك له تا کو نو نه دی
داد ممیزو گدام
او داد آنارووړشی
نشته نړی کی گوره
جگه شمله دی وی ستا
دافغا نا نوویاړه
ای د میرویس ټاټو بیه !
ای د احمد وطنـــه
ځان می دورورساوه
دغه دی درغلمه



۲۵ میزان ۱۳٦٦ دکندهار ښار

# ما و لیدل چی

ما د غا تو لو سرو گلو نو بیابان
د بد خشا ن د غرو پر څنگو ولید
د بهار د په هسی دری کی تیتی
د سرو یا قو تو د شفق د انبارونو رشی
ما یکی و لیدل آشناد سپر لـو شیبی
او د کو کچی د اوبو مستی څپی
دهغی سیمی دا نسان د لطا فت جذبه
او د بز گری نجلی زلفو کـــی دغنمو وږی
ما هلته و لید ل چی
د لوړ و غرو په هسکو هسکو څوکو
د بلبلا نو او دزانو ډلی
په وا ی ، دشنه آسمان لمنـــی باند ی
د بناپیر یو . خپل مزلو نه وهی
ماهلته و لید ل چی
دعقا با نو ډلی
او په بنیوه کی د هوسیو رمی
د پسر لی سپینو ورو مو نه اتنو نه کول
ای بد خشا نه تل بهاره دی وی
گلشته بوی کی ستا دشان پسرلی



۵ حمل ۱۳٦٤ بد خشان

# دلارې ملګرې ته

لاره ده اوږده خو . . . . . .
تو پا نو نه اوښکې لري
ځان سره تر خې او هم خوږي لري
داد سرو سکرو تولار
داده له اغزوډکه
دې کې هم ټکري شته
دې که هم مرګو نه شته
خو به د هدف لورته
هغه د لمر و کور ته
هلته چې نيستې نشته
ګيري ما نسان قدر
خو په هغه خوا باندې
سسته اراده نه کړي
دا لمبه سړه نه کړي .



کا بل ۱۰ ثور ۱۳۶۷

# راز

شور کوه هما عره د بلبل په‌شان
کیف کی کج او پیچ شه دکاکل په شان

رمز دی نوی ژو ند لری پوهیږمه
فخر کوه و خانده دگل په‌شان

ځان دی غنیمت گڼه هوښیاره‌نن
در به شی بلبل در ته گلزاره‌نن

جګ دی کړه قلم د ترقی په خوا
مینه دوطن ده نن شعار زما

پا م کوه چی و خت دړ نه عبث نه‌شی
نه کیږی آرمان گوره د نن سبا

لاس کی دی قلم لکه خنجر لری
پوه یم چی ښه فکر اونظر لری

گر مه جذبه او ترا نه دهستا
سوی په دی شمع پروا نه‌دهستا

پاخوه ځوانا ن دی شاړودښمونه



ته لو سره لاس کی پیما نه‌ده‌ستا

اورم په شپیلی کی دژو ندون‌غزل

لږ ښا نی چتټك شه چی‌لری‌مزل

اژ گوره طبیعت ته په کوم رازکی‌دی

ته لو کا ئینا تو ته څه سازکی‌دی

خوشی مفکور ی پسی چی لاړنه‌شی

گوره خپل وطن دی په څه رازکی‌دی

مینه دوطن کی قلندر که ځان

ژرد پسر لی کیف نه خبر کـه‌ځان

# چیری دی؟

را غی پسر لی زموږ یار چیری دی
ستر گی لاری څاری نگار چیری دی
لاره به جارو کړم په لیمو وږ ته
سو ی په اورو نو خمار چیری دی
چا سره به وکړم دگلا نو سیل
چیر ته به پیدا کړم ، ما لیار چیری دی
غږ د عند لیب دی چی له غـــره راځی
باغ کی د بلبلو چغار چیری دی
او س به له یا غی گلانو حو نداخلو
شنه پسر لی کی خلکو . د لدار چیری دی
خم دسینه څپو ته می گیلی کوم
مست له شور اوشره آبشار چیری دی
ژوند چی پکی بنه وی د زیار کښې انسان
ووا یه ځپا نده د یار چیری دی؟



کابل ۱٦ حمل ۱۱٦٤

# د شمشاد څوکه

د شمشاد د غره له څوکې
د غیرت اواز جګیږي
د هدف په لور روان دی
سر ی سکرو تې تازه کیږي

تورو شپو کې ستوري بل شول
لکه لمر غوندې ځلیږي

دوطن په نام او ننګ کې
مال او سر ځنې تیر یږي
په هر ګوټ او هره سیمه
دو حدت سرود غږیږي
د تیراله لوړو څوکو
د غیرت سرود خپر یږي
د خیبر له تږولاندې

سره اوږو نه دې بلیږي
د دښمن په لور یې یون دی
لوی تو پان غوندې خو ځیږي
دآزاد ژوندو ن لپاره

دظالم لاس به لنډ یږي
ما تې ګوډ ې به شي سمې
انسا نې ژوندون جوړ یږي

# د سنګر په لور

ا حسا سا ت مې په سکروټوکې پخیږي
دم په دم را تازه کیږي لمبه کیږي

د خیا لو نو او فکر ونو په بهیر کې
اراد ه مې یو ی خوا ته چمتــو کیږي

هغه داچې د سنګر په لور مــــې نیت دی
ټو له وینه مې رګو نو کې نخیږي

دد ښمن دکړوستر ګو چاره څه ده
و خت ناو خت چې دوی په موږ با ند ی لګیږي

دهیواد په هر یو فرد باندې دیــــر ګران دی
د چا شپې ورځې سنګر کې چې تیر یږي

په تاریخ کې به یې پا تې خاطرې شي
دغدار دښمن په مخ کې چې دریږي

دا مقا م په لوړ همت با نـــدې ولاړ دی
تل مدا م به لګه لمر غو نــــدې ځلیږي

# توپانی څپې

څې به دا دو ریځو تو پانی څپې
پاکه به فضا شی له گردو نو نـــه
نه به وی د تالندی و حشی آواز
دکی به شی دښتی له گلو نو نه
پاس به د فلك په تندی داغ کیږدو
تینگه به کړو سوله له وزرونو نه
ژرکه شی تر سره دا امید زموږ
ویرا و ماتمورك به شی کورونو نه
ښه به وی که ټول شو دوطن په نوم
دا غږ که وچت شی و لسو نو نه
ټول به د زیارکښ انسا ن په غم کی شو
دا زمو ږ غو ښتنه ده قو مو نو نه
گورم دوطن هسکو شملو ته می
موږ ته چی را پاتی له نیکو نو نه
تورو تږ مو باندی که لمر راشی
تیږی به جلا کړو له لالونو نه
زه یو پوروړی ددی خاوری یم
نور یی او به نه څکم له سیندونو نه
ما سره ملگری په عمل کی شی
ژرکه زه شم خلاص له دی پورونو نه

کابل ۳۱ حمل ۱۳٦۷

# سرې لمبې

د طبیعت په ښنو دروکی
د مر غا نو زمز مې دی
ته لی دښتی زر غونی شوی
دشپنو پلنی رمی دی
شنه آسما ن کی لرې برې
زموږ د هیلو قا فلی دی
د بوراد زړه له درده
پور ته شوی سرې لمبې دی
په خزا ن یې ما تم جوړ کړ
هیبت نا کی یې ناری دی
له آسما ن نه وریځی تښتی
دلمر وړانگی او س خوارې دی
بې جلبه شول سیندونه
ډیرې تیز ی یې څپـــــې دی
دکونړ سیند به اوس ښه که
ډك له واورویې رشې دی
د هیواد آباد یدوته
ته لو کړې فیصلې دی
ښه شو ښه شوچې سپرلی‌شو
نوې ژوند ته تلوسې دی

# دلمرکورته

یم د سپر غیو او لمبو ملگری
د سیلا بو او د څپو ملگری
د خلکو کارکی نا آرام خوښ یم
روا ن کاروا ن سره مدام خوښیم
د شر افت د لوړ مقام پخاطر
دا نسا نی ژو ند د مرام پخاطر
داچه ورځمه لوړو غرونوباندی
پوه یمه زه تورو تیا رو باندی
ځان به نږ دی کړمه د لمرکورته
ددی نړی د حواد ثو بیان
دهر زیار ګنبس دارما نو نو توپان
په مصیبت باندی اخته انسا نان
هر یو به زه ور ته په ګوته کړمه
ور نه به مرسته د خلا صون وغواړم
آخر به ورشمه د لمر کورته !
دپاکی مینی او محبت کورته!

مسکو ۱۱ جون ۱۹۸۷

# غوا ړمه

په غرور غو کی دی وطنه زما
د سر وګلا نو تو کید ل غواړمه
دژوند اړیکه می داواز سره ده
لکه پتنګ پر ی وردا نګل غواړمه
چی می ایر ی شی په لمبوبدلی
د مینی اور کی سو ز یدل غواړمه
لاره می سمه شوه دستوروپلور
زینه می ایښی ور ختل غواړمه
دژمی قهر په ما خه ونه کړل
د لمر په خنګ کی ګرمید ل غواړمه
ما له خزا ن نه لاره چپه کړله
لکه پولاد زه کلکید ل غواړمه
چی په یوه ځرک شم د بریښناپه شا نی
تورو تیا رو کی ځلید ل غواړمه
ددی وطن د مرور په خاطر
په لیمولار جارو کول غواړمه



کابل ۲۹ر۱ر۱۳۶۶

# دسازونواور

شمعې دې بلېږي خپل وطن ته بيا
مست پتنګان نه ګوري کفن ته بيا
خلاص شول بلبلان له فريادونونه
راغلل په خوښې ښکلي چمن ته بيا
شاو خواغا تول ور ته ښکاري
ځمکې ، غيږه خلاصه کړه سمن ته بيا
وچو سپېرو د ښتو کې به لوړ اغي
خوښ بلبل روان شو خپل ګلشن ته بيا
خږ عندليب بل کړ دسازونواور
ژبه چاور کړې دې بدن ته بيا
زه ځپاند طبيعت ته هک حيران يمه
زړګي را رواني شوي ختن ته بيا

کابل ۳۰ ر۱۲ر۱۳٦۵

# د جانان پرلور

را غی پسر لی د گلستان پرلور
زه به پیغا م لیږم د جانان پرلور
او ښکی د نر گس له سترگوتو یی شوی
نه ورځی بلبل باغ او بو ستان پر لور
څمکی بخملی جا می اغو ستی دی
ستوری په سجده شول در یحان پر لور
و سود فلك زړه په غمو نوکـــی
پور ته شول دودونه د آسمان پر لور
مستو گلابی غوټیو څه وکړل
وی یستل سرو نه د گریوان پرلور
نشته دی طا قت او حو صبله نوره
و گور ی خا ټول ته د بیا بان پرلور
رابه شی ښپانده مرور یار دی
سو له راروانه دافغان پر لور!

# دردیدلی بلبل

بد لی وا یی ر بړ ید لی بلبــــل  دا له خزا نه درد ید لی بلبـــل
په چیغو سردی د خزان له لاسه  دا در نځــو نو کــړ ید لی بلبل

ړاغی په شوق دپسرلی بوستان ته
دگر می مینی محبت جهان تــه
ټکور د زړه به په گـــلا نو کوی
غږ به د مینی کړی وچت آسمان ته
ځان سره ډیرډیر ا میدو نه لری
د زړه په سر سوی دا غو نه لری
دده و عدی د سر وگلو نو کورکی
د پسر لی رنگین رمزو نه لــری
بیا به گلا نو کی دشورنغمی وی
دده په خونه کی به داور نغمی وی
تورو تیا رو کی به رڼا جوړه شی
دنو ی ژوند به په هر لورنغمی وی

په لوړ آواز د محبت ښخا طـــر
په شنو با غو کی دالفت پخا طر
سندر ی وا یی سو کالی لپـاره
دښکلی مینی صدا قت پخاطـــر
داد خزان‌نه درد یدلی بلبل
دا در ځو نو کړ یدلی بلبـــل

کابل ۱۵ر۱۲ر۱۳٦٥



# جنگ دریزی

موږ به یواو که به‌نه‌یو
خود و خت لیوا ن به نه وی
دا هیواد به تول آرام وی
لوږ د سو لی به مقا م وی
د بارو تو گو دامونه
دگو لیو داخری بـــــه
شی به کند ی ته ورتیښ
ا فسا نی به شی پیږی ته
نو ی نسل به یی لو لی
او کیسی به وی د خلکو
موږ به یواو که به‌نه‌یو
خود وخت لیوان به نه‌وی

کند هار ۱۳ر۷ر۱۳۶۷

# د ننګرهار غرونه

ای ابدی او بی زوالو غرونو
ترڅو به پټه خوله ولاړ یاستی
ولی له خولی نه مواواز نه باسی
ددی تاریخ ر یښتیا نی رازنه وایی

* * *

تا سو ونه لیده ، مغولو منډه ؟
تا سو و نه لیده چنګیز تارومار؟
څنګه یو ځل پری کربلا جوړه شوه
له هری خوا نه پری تالا جو ړه شوه
ای ابدی او بی زوالو غرو نو
ترڅو به پټه خوله ولاړ یا ستی
والی له خولی نه موآوازنه باسی
تا سو ونه لیده ، اکبری میړانه؟
چی مکنا تی یی، له پښو وغورځاوه

او په میو لدکی دملالی غیرت
یا دامان د آزادی ناره
لکه چی هیڅ موور نه پام نه‌دی
ای ابدی او بی زوالو غرونو
ترڅو به پټه خوله ولاړ یا ستی
ولی له خولی نه مو آواز نه‌باسی
ددی تاریخ ریښتیا نی رازنه‌وایی

کابل ۱۵ حمل ۱۳۶۸



# ننگرهار او کندهار

ای زما د وطن خویندو
ای دښمنه آسمان کوترو
ای دبرم او غیرت
د میړا نی او همت
ټول پښتو نه مو سا تلی
لوړ سرو نه مو نیولی

• • •

د جګړی دسا لار موردی
شی په خپلو بچو بوره
چی یی کړی دی په تا سو
بی مو جبه یر غلونه

* * *

غرو رغو کی زلزله ده
پر دښمن باندی لړزه ده

نور به نه وی نا تاړونه
نور به نه وی ناور ینونه

* * *

اې زما دوطن خوږیندو
ای دشنه آسمان کوترو
ټول ستو نځو نه مو سا تلی
لوړ سرو نه مو نیولی

کابل ۱۵ر۳ر۱۳۶۸



# دځوکورو اختره

دی زور ید لی قام تـــه
تا کوم الهام راوړی ؟
دی تیت پرك و لس تـــــه
تا کوم مرا م را وړی ؟
نن چی ته دلته را ځی
دځو کورو ا ختره !

* * *

موږدی ولسس لپاره
له‌تانه غواړو شفاء
بل چیر ی لاړنه شی ته
موږ ته به بښیی دوا
نن چی ته دلته را ځــی
دځو کورو ا ختره

* * *

ناست دژوندون په‌تمه
دا انتظار لرو موږ

له ډېره عمره تر نـن
زړو نه بیمار لړو موږ
نن چی ته دلته راځـی
دخـو کورو ا ختره ا

*    *    *

بنه ده چی راشی موږ ته
کهورك شی شر زموږه
دآزادی په قانون
که لوړشی سر زموږه
نن چی ته دلته را ځـی
دخو کورو ا ختره !

# د نیکمرغۍ بیړۍ

ښکلې ځلاندې او نیکمرغـــۍ بیړۍ
د تورو شپو د سمندر په زړه کې
ځې د څپو له تو پا نونوسره
درومې پر کومې لورې ؟
زه له پېړیو را هسې
ډک له ارمانو او دردونو سره
د طبیعت په سر گرداني غېږ کې
ستر گې پر لاره ستا راتک ته یمه
ای ځلاندې او نیکمرغې بیړۍ
درو مې په کو مې لورې ؟
راوړه لمبې او پلوشې راوړه
تشه زموږ کلې ته راچې نه شې
دلته دې غلې اوسېږو مانه سېند ته
تو ندې لړو تیزې شانځپې راوړه
ته دورورې په نامه
موږ ته د مینې و لولې راوړه
ښکلې ځلاندې او نیکمرغې بیړۍ
دروم پر کو مې لورې ؟
ستر گې پر لاره ستا راتگ ته یمه!

کابل ۵ر۲ر ۱۳۶۸

# پسرلی

وینم سپر لیه !
راوړل تا ټول بخملی فرشو نه
او رنګا رنګ ګلو نه
ښه شو دی چمن ته بیا ،
را غلل بلبلان ورته .
دی و چو سیند ونو ته
ورد ی ، کړ توپان ورته
جګ دلو ی پا میر سرته
لوړدی کړل بازان ورته
دو مره‌چی ته ځواك لری
دو مره چی ته‌واك لری
څه کیږی له موږ سره
لاس ته دو زور ی را کړ ی
ګو ند ی چی هیواد زموږ
خلاص له د ښمنا نوشی
سو له آرا می راشی
کور دافغا نانو ته

کابل ۲۹ حمل ۱۳٦۸

# دغور ځنګونو پر خوا

نا ست ومه یوازی خو په فکـر دجهان کی وم
خوك را سره نه‌ویك تنها په‌بیا بان کی‌وم
خیال می رانه ولاړو دوطـن د نهضتو پر خوا
نوروته که دښته وه خوزه پــه ګلستا ن کی‌وم
مست ومه بی میود غیرت نیشه‌می سرکی وه
عدل او انصا ف و دتشخیص‌په‌لوی میدا ن کی وم
هلته جلالی غرورمی مست‌ونخیده‌راته
شوخ لکه میخواره هری خوا ته‌رنګیده را ته
کله به‌یی ګل سره دراز او نیازخبری کړی .
پټ دزړه دننه کله‌کله ژړیده‌راته
هرخه را نه هیروه دوطن‌په غم‌اخته ومه
وخت می دتاریخ چی په نظرکی‌خوز یده راته
ما سره رینښتیا د زمانی نه‌ډیردردونه‌وو
هری خوا ته سم په ما شا عــر باند ی غمو نه وو
زه دنهضتونو دکاروان‌سره‌ملګری‌وم
وراند ی به چی تلمه په مخ کی‌می‌بندو نه‌وو

ژوند را ځنی ورك وو گرځ چارپیره می مر گونه‌وو
اوس چی نظا مونه اولسی دی‌زمانی سره

ځان به نړی وا لوته ښکاره‌کړی‌افسا نی سره

تل به‌وی ملی تړون زموږ‌افغانی‌تړون
خوښ گر ځــه ښپانده د هیوادترا نی سره

# بلیږم

شمع یم بلیږم
په رګو کی می
داور لمبی .
سوزم اوو بلیږم
دزما ن په تر و ږمبو ږکی
ځو مره په قو ت کی دی
زما دځان دا سری لمبی
غږ لری اوشور لری
شاو خوا ځپی ځپی
جنګ زما جګړه زما
تو رو تر ږږ مو سره
ځم به دسپیدو پر لو ر
تو لو کړ اوو سره

کابل ۱٤ ثور ۱۳٦۷

# بیر ته‌به‌راځی

خیر که مسا فر شوی آشنا بیر ته به راځی
هیره در نه نه شی و فاءبیر ته‌به‌راځی

داده ډیره سخته که ته رانه‌شی‌ترپایه
تېینگه ده وعده زما ستا ،بیر ته‌به‌راځی

هر چا ته به ښه وای که سفروای په هر لوری
نه به وای په‌زړه‌کی سودا، بیر ته به‌راځی

فرق به په خیلونو اوږولونوکی‌هیڅ نه‌وای
علم به وای خور، اورنا بیر ته‌بـه‌راځی

گوره انتظار کی ځپاند نه‌شی‌در نه‌هیر
وران نه کړی دمینی کلا، بیر ته به‌راځی

کابل ۸ ثور ۱۳۶۷

# دوطن ساتونکی

گوره چی شغلی د ډیوی مړی نه‌شی
بلی‌یی سکروټی دی ایری نه‌شی
ځی دنو ی ژو ند په لور یی‌مخه‌ده
سر با ند ی یی ور یځی چـی‌خوری نه‌شی
واوره ای دسولی ستر سا تونکیه !
ډك زموږ د صبر نور کا سی نه‌شی
وینیسه د جنگ دپلویا نومـخ
مړو، نه‌چی‌نور ډکی‌مد یری‌نه‌شی
موږ سره که زورد پر گنووی‌مل
هیڅ و خت د احجری به کنډ والی نشی
ورك که دنفا ق‌تخم په موږ کـی‌شی
زړه به د څپا ند په اورایری نه‌شی

کابل ۱ ثور ۱۳٦٦

# وطن

څو نه ښکلی غرنی وطن زموږ دی
هر ی تړی‌نه یی‌وځی سره‌لالونه

خود کار په‌تمه گوری هـــــری‌خواته
چی له شاړونه یی پورته کړی‌گر دونه

په او بو او آبشاروبا ندی‌سمبال دی
له سینی نه یی راوځی ډکرودونه

خوا فسوس چی بی هوده درومی بی ځایه
څو مره ښه به‌وی که ودرووبندونه

بیا نو هلته دوطن حق‌به اداکړو
که نږدی کړوموږ یوبل ته خپل‌دازړونه

# زما شعره!

ما مې د زړه د تنداره سکروټې
او سو زوونکې سپرغۍ
چې دافق لمن يې ونيوله
دامې د خپل شعرپه زور ايستې‌دې
نو دا شعرو نه زما
ترجماني زما د هيلو کوي
زما د فکر او د خيال
زما د تيراود حا ل
زما دآه او او سيلو
او بې علاجه دردو
دبد مرغيو زما
دبد بختيو زما
بارو نه تل را ته په‌شاه گرځوي
هو! دا زما ځوان شعرونه
ترجماني زما د هيلو کوي .

لنبنکرگاه ۲۹ جوزا ۱۳۶۷

# که‌ره‌مرشم

چې د قام او دوطن غم و حسره‌وی
په تا بو ت پسی می هغه ځوانان پر یږدی

په ژو ندو ن کی چې د خاوری ملنگا ن وی
پا ك سپیڅلی مجنو نا ن ـ مینان پر یږدی

چا پلو سی‌غوړمالی یی چې‌زده‌نه‌وی
په همت با ند ی سمبال انسانان پر یږد ی

چې په عشق که نفسا نی نه‌وی‌یا رانو
دغه رنگه پاك سوچه عا شقـــان پر یږدی

حقیقت باندی چې سترگی پټــی‌نه کړی
نو مین په حقیقت صاد قان پــر یږدی

چې شعرو نه یی دزړه‌په‌وینورنگ‌وی
دوطن په غم اخته شا عران پــر یږد ی

چې قلم یی د پیسو په خا طرنه‌وی
بی حا جته اوشر یف لیکو ا لان پر یږدی

چا چې ما ته دوطن مینه‌ښودلــی
را ته هغه گران درانه استادان پر یږدی

بیا می پټ کړی دوطن تر خاورولاند ی
خو تاریخ کی د ځپانه یو دیو ان پر یږدی





## د شاعر لنډه پېژندنه

له پا ټکيز پلوه ديوه بزګر زوی دی چې په (۱۳۳۱) کال د ننګرهار ولايت د بهسود و ولسوالۍ د ولايتيو په کلي کې زيږېدلی دی.

تر دوو لسم ټولګي وروسته دعلوموا کاډمي په خپرونو او نورو څانګو کې يې ماموريت درلود.

په (۱۳۵۸) کال دلوړو و پوهنځي زده کړو لپاره شوروي اتحاد ته واستول شو په (۱۳۶۳) کال له ستنېدو وروسته دکورنيو چارو وزارت د سياسي چارو د لوی رياست د خپرونو د لوی مديريت د خارندوی په مجله کې د مسلکي غړي په توګه و ټاکل شو چې همدا اوس د څارندوی د مجلې د مسئول مدير په توګه د نده پرمخ بيايي.




